# د سوات نامه تحقیقي او تنقیدي جائزه
# Research and Critical Analysis of Swat Nama

Javed Iqbal*

**Abstract**

This is certain that Khushal Khan Khattak is a writer of number of voluminous books. He wrote both in prose and verse envisages the whole new trends and genres of his era. According to Major Roverty he is the author of more than 300 books in which 20 books are available. Swat Nama is one of his books which have been composed in verse and very much closed to the modern genre of travelogue. Khushal Khan Khattak expressed his views in this book which he was observed during his travel to Swat. This book carry all the literary and knowledge based information related to history of Pashtuns, geography, and religious etc. of inhabitants of Swat and political conscious of the then Pashtuns as a whole. Swat Nama in verse can be considered is the first travelogue of Pashto literature. A few writers and intellectuals placed this book in the genre of reportage but by analyzing the contents of the book we can say that the book under discussion is very similar to the modern genre of travelogue. This paper deals with the contents as well as the fixation of genre in Pashto literature and effort has been made that the literary and historical significance may be explained by presenting some reference and evidences.

"سوات نامه" د خوشحال خان خټك هغه منظوم کتاب دے چې څو واره په چاپ شکل مخې ته راغلے دے خو په ټولو چاپ شوو شکلونو کښې مکمل کتاب د ښاغلي همېش خلیل د تحقیقي مقدمې سره په اکتوبر 1986ء کښې د مرکزي خوشحال ادبي او ثقافتي جرګې له خوا چاپ شوے دے، مونږ په دې مقاله کښې د خوشحال بابا د دې اثر جاج د همېش خلیل صاحب د څېړنې سره چاپ شوي کتاب په بنیاد اخلو.

د ``سوات نامه" د چاپ نه وړاندې هم زمونږ محققینو د خوشحال بابا په اثارو کښې د سوات نامې یادونه کړې ده او د چاپ نه پس ئې هم یو شمېر لیکونکیو ذکر کړے دے خو

Assistant Professor, Department of Pashto, University of Balochistan, Quetta *

له هرڅهٔ اول دلته د همېش خلیل صاحب د مرتب کړې سوات نامې او هغې نه وړاندې د چاپ شویو سوات نامو ذکر د همېش صاحب په حواله کوو او ورسره د هغهٔ دا دعویٰ هم مخې ته ږدو چې هغه خپله مرتب کړې ``سوات نامه" د تېرو ټولو نه مکمله او مفصله ګڼي. همېش خلیل لیکي چې:

"سوات نامه په وړومبي ځل ارمغان خوشحال کښې، دویم ځل تاریخ مرصع او په دریم وار د اووهٔ ورځنۍ زېرے له خوا اکېډمي اف سائنس اف افغانستان د پوهاند عبد الحئ حبیبي د سریزې او څرګندونو سره په کال 1368ش کښې شائع کړه، دغه ذکر شوې چاپي ټولې نسخې په درې سوه یو نوي اشعارو مشتملې دي، زمونږ دا موجوده سوات نامه د ذکر شوو چاپي نسخو په مقابله کښې اتهٔ اتیا شعرونه اضافي لري".[1]

دغسې د څلور سوه نهه اویا بیتونو د مجموعې په شکل کښې دغه سوات نامه د ښاغلي همېش خلیل په زیار پښتو ادب ته پېرزو کړے شوه چې اوس د خوشحال بابا په شاهکار اثارو کښې یو ګڼلے شي.

د سوات نامې په حقله وړومبۍ باقاعده څېړنیزه رائې ډاکټر خدیجه فېروز الدین په خپله پي ایچ ډي تحقیقي مقاله کښې ورکړې وه چې په دې ډول ده:

> ”Another small book in verse is Sawat Nama which gives a graphic picture of the locality Climate, scenery and the inhabitants of Sawat and was composed in 1086 A.H. [A.D. 1663] when Khushal visited that territory, with the object of enlisting the help of people of that land against the Mughals. His reason for the visit were evidently political, but Khushal gives us anther important cause,which naturally throws much light on his character and shows that even at the age of sixty four ,he felt so much attraction for hawks”.[2]

ترجمه: (یو بل وړوکے منظوم کتاب سوات نامه دے چې د سوات د سیمې، اب و هوا، منظرونو او د سوات د اوسېدونکیو په حقله یو تصویر وړاندې کوي. دا کتاب په 1086ء کښې لیکلے شوے دے په کوم دور کښې چې خوشحال د مغلو خلاف د دې سیمې د خلقو مرسته ترلاسه کولو په غرض دې سیمې ته راغلے وهٔ. دې سیمې ته هسې خو هغه د سیاسي مقاصدو په غرض راغلے وهٔ خو د خوشحال د بیان نه دا هم ښکاري چې د 64 کالو په عمر کښې هم هغه د بازونو ډېر شوقین وهٔ او بازونو کښې هغهٔ دپاره ډېر زړهٔ راښکون وهٔ).

دغه شان دوست محمد خان کامل مومند په کال 1951ء کښې په خپل اردو کتاب ``خوشحال خان خټك" کښې د خوشحال په اثارو کښې د سوات نامې په حقله داسې لیکلي دي:

> قریباً چار سو اشعار پر مشتمل مثنوی ہے جس میں سوات اور سفرِ سوات کے حالات درج ہیں، سوات کے بعض جغرافیائی خدوخال کو بھی اختصار مگر نہایت خوبی سے بیان کیا ہے۔ علاوہ ازیں یوسف زئی قبیلے کے تمدن و

معاشرت پر بھی روشنی ڈالی گئی ہے۔ اور ساتھ ہی چند تاریخی اور قومی جدوجہد کے واقعات بھی بیان کئے ہیں، جو کچھ یوسف زئیوں کی سوسائٹی کے متعلق کہا گیا ہے، وہ اس وقت کی افغان سوسائٹی پر عام طور سے صادق آتا ہے، سوات نامہ میں کسی قدر عقائد کی بحث بھی آجاتی ہے، اور کچھ تھوڑی سی علمی و ادبی تنقید بھی ہے، اعتقادی نقطہ نظر کے علاوہ اخوند درویزہ کی تصنیفات پر خالص ادبی زاویہ سے بھی نکتہ چینی کی گئی ہے، خان بعض جگہ بہت شدت سے کام لیتا ہے۔

مثنوی سوات نامہ کے اشعار چھوٹی بحر میں اور بڑی چست ورواں اور برجستہ ہیں، افکار و مضامین زبان اور اندازِ بیان ہر لحاظ سے سوات نامہ ایک بلند پایہ ادبی اثر اور خان علیین مکان کی بہترین تصانیف میں سے ہے، سوات نامہ تمام و کمال تاریخ مرصع کے قلمی نسخہ میں درج ہے [3]

کله چې په اکتوبر 1986ء کښې د همېش خليل د څېړنې سره سوات نامه په مکمل شکل مخې ته راغله نو ورسره د خوشحال بابا د سوات د سفر مکمل تفصيلات هم مخې ته راغلل او سوات نامه باندې ليکونه هم مخې ته راوستل پيل شول خو تراوسه په ځانګړې توګه په خصوصيت سره د سوات نامې کوم تحقيقي او تنقيدي جاج مخې ته نۀ دے راغلے چې په کښې په تفصيل سره د خوشحال بابا د دې شاهکار ليك غټې اړخونه تجزيه کړے شوي وي. البته په کال 1981ء کښې د اسلاميه کالج يو پروفېسر ډاکټر شکيل احمد خان د سوات نامې انګرېزي ترجمه د خپل ايم فل د سند دپاره پېښور يونيورسټۍ ته پېش کړه او دغسې هغۀ په دغه انګرېزي ترجمه په انګرېزي ادبياتو کښې د ايم فل سند ترلاسه کړو. ښاغلے همېش خليل صاحب ئې ريسرچ سپروائزر وۀ. د خپل تهيسس په ابتدائي خبرو کښې ډاکټر شکيل د سوات نامې په حقله داسې ليکلي دي:

Swat-nama of Khushal Kan Khattak is one such everlasting work of creative writing which portrays not only the history and events of Khushal Khan's timse ,but also depicts the discerning eye and critical appreciation of Khushal Khan in dealing with the people and natural beauty of Sawat valley This work is of considerable importance for historians and research scholars as it paints in elaborate details the relations that Khushal Khan had with the Mughal authorities and important personalities of Swat in particular, and N.W.F.P in general.[4]

ترجمه: (سوات نامه د خوشحال خان خټك د تخليقي ليکونو يو داسې لازوال ليك دے چې نۀ يواځې د خوشحال د عصر تاريخ او واقعات را مخې ته کوي بلکې د سوات وادۍ منظرونه او د هغه ځاے د خلقو په حقله هم يوه تنقيدي خاکه را مخې ته کوي، د هغۀ دا اثر د تاريخ دانو دپاره په دې وجه هم ډېر اهم

دے چې د مغلو حکمرانانو سره او د صوبه سرحد د ځينو اهمو شخصياتو سره په عمومي توګه او د سوات د شخصياتو سره په خصوصي توګه د خوشحال د تعلق او واقعاتو يوه خاکه هم را وړاندې کوي).

د سوات نامې په حقله وروستي مجموعي معلومات د ډاکټر اقبال نسيم خټک صاحب دي چې په خپل وروستي اردو کتاب ``پشتون شناس" کښې ئې ورکړي دي، هغه ليکي:

> يہ بھی ايک مثنوی ہے جو سال 1086ھ میں لکھی گئی، اس مثنوی میں خوبصورت وادئ سوات کے جغرافیئے، لوگوں کی معاشی زندگی اور رسم و رواج کا ذکر کیا گیاہے، اسی طرح سوات کے فطرتی حسن چشموں اور انسانی خوبصورتی کی تعریف بھی کی گئی ہے، یہ مثنوی سال 1979ء میں افغانستان کابل اور سال 1982ء میں پشاور میں زیور طباعت سے آراستہ ہو چکی ہے، سوات نامہ تاریخ مرصع اور ارمغان خوشحال میں بھی چھپ گئی ہے، خوشحال کی قادر الکلامی اور انداز بیان کی روانی کی جھلک سوات نامہ میں نظر آتی ہے.[5]

د دغو حوالو نه معلومه شوه چې سوات نامه خوشحال بابا د مثنوي نظم په شکل کښې ليکلې ده او په کښې ئې د سوات د سيمې او د خلقو په حقله مجموعي معلومات ورکړي دي، هسې خو دا مثنوي يو اوږد نظم ښکاري خو په دغه نظم کښې خوشحال بابا د ژوند د مختلفو اړخونو او مسئلو په حقله هغه معلومات ورکړي دي چې د تاريخ برخه جوړه شوې ده او د خوشحال بابا په ادب، جغرافيه، تاريخ، مذهب او عقائدو او نورو علمي اړخونو د پوره ګرفت ثبوت ورکوي، خوشحال بابا خپل دغه طويل مثنوي نظم ته د کوم صنف نوم نۀ دے ورکړے خو مونږ ته پته ده چې مثنوي د نظم يو زوړ شکل دے چې په کښې د ځينو نورو صنفونو رنګ هم ليدے شي ځکه مونږ په دې بحث کښې هڅه کوؤ چې د خوشحال بابا د دې ليك په صنفي تعين هم خبرې اوکړو او د دې ليك د موضوعاتو او مندرجاتو جاج هم واخلو، خو د دغه بحث د سوات نامې د مدون او سريزه نګار ښاغلي همېش خليل مجموعي معلومات هم پيش کول ضروري دي، ښاغلے همېش خليل د سوات نامې د قلمي نسخې او د سوات نامې د متن او موضوعاتو په حقله خپل مجموعي بيان کښې وائي:

د دغه مثنوي يوه قلمي نسخه پښتو اکېډېمۍ او بله راقم الحروف هم لري او د دغه دواړو خطي نسخو د تقابلي نتيجې په لړ کښې چې راقم الحروف اوس دا کومه نسخه مرتب کړې ده، هغه په څلور سوه يو کم اتيا (479) شعرونو مشتمله ده.

مثنوي سوات نامه متوسط بحر و لے روان او چست شعرونه لري، خو د مشکل الفاظو د استعمال په وجه د عامو خلقو له پوهې نه دا شعرونه اوچت دي، دغه مثنوي کښې خوشحال خان د سوات د سفر او دورې د حالاتو د يوسفزو د تمدن او معاشرت په حقله هم ډېر څۀ

وئیلي دي. د تاریخي او قومي کشمکش د واقعاتو سره د عقائدو بحث په کښې هم شوے دے. څۀ علمي او ادبي انتقاد هم لري. د اعتقادي نظرئې نه علاوه د اخون درویزه بابا په مخزن الاسلام په کښې نکته چیني شوې ده۔[6]

هرکله چې په وړاندې بحث کښې د مختلفو لیکوالو په حواله د سوات نامې تاریخي پس منظر او د دې اثر د لیك محرکاتو ته اشاره شوې ده او دا هم وئیلي شوي دي چې سوات ته د خوشحال بابا سفر د سیاسي نوعیت وۀ او د مغلو خلاف د هغۀ د جدوجهد یوه کړی وه خو ورسره هغۀ د سوات د سیمې په جغرافیائي اهمیت هم خبرې کړې دي، په دې بنیاد دلته ضروري ګڼم چې د ښاغلي همېش خلیل صاحب په حواله د سوات نامې د محرکاتو او سیاسي پس منظر هم څۀ اووئیلے شي. دې لړ کښې همېش خلیل صاحب لیکلي دي چې:

د دغه مثنوي محرکات او پس منظر د خوشحال خان د ژوندانۀ له هغه برخې شروع کېږي چرته چې د خپل چاپېرچل حالات هغه په یو داسې قدم پورته کولو مجبور کړے وۀ چې د موصوف په خیال او خواب کښې هم نۀ وۀ، د کال 1074هـ د جمادی الثاني د درباري سازش د المیې نه پس یو ورځ خوشحال خان په دې وېنا مجبور شو چې:

که د سمې که د غرۀ دي یوسفزي
همګي زمري دي مه ئې وه زوال
چې پښتون شوم په دا هسې سپینه ږیره
نور مې خدائے مه کړه مغل وایم په ځیره

په نوښهره د خوشحال خان او په کړپه د ایمل خان له لاسه د بادشاهي فوځونو شکست د دریا خان په زړۀ کښې هم د کوهاټ د قلا د سر کولو خواهش او جذبه راولړزوله، اګر که د خوشحال خان او دریا خان تر مینځه په کوهاټ د یوې شریکې حملې په حقله د وړاندې نه خط و کتاب روان وۀ، ولې د کوهاټ په قلا د کامرانۍ د بېرغ رپولو شوق دریا خان د مقرره وخت نه وړاندې په ناتار کولو مجبور کړو، د دغې حملې په نتیجه کښې دریا خان د بده مرغه شکست اوخوړ، او هم په دغه ناتار کښې د هغۀ خپل ورور تاتار خان سره د کمو زیاتو سلو کسانو مړ شو. خوشحال خان چې د دریا خان د شکست نه خبر شو نو وړومبے خو ئې یقین نۀ راتلو، ولې په دغه حقله خپله چې د دریا خان خط هغۀ ته اورسېدو نو خوشحال خان ډېر زهیر شو۔[7]

د دغو بیاناتو نه د سوات نامې سیاسي او تاریخي پس منظر خو ډېر په اسانه څرګندېږي خو د سوات نامې په نورو علمي او ادبي اړخونو بحث به د دې لیك مقام او اهمیت نور هم څرګند کړي، ځکه مونږ د سوات نامې په دوؤ غټو اړخونو خصوصي بحث کوؤ چې په دې ډول کېدے شي.

- د سوات نامې صنفي تعين او فني تيکنيك
- د سوات نامې علمي او ادبي حېثيت او مقام

د دغو دوؤ نکتو په وضاحت کښې مونږ هڅه کوؤ چې د سوات نامې د جاج په موقع د خوشحال بابا د علم و فضل او متفرقو موضوعاتو هم خبرې اوکړو، او ورسره د هغۀ په تاريخ پوهنه، مذهب او عقائدو، جغرافيه دانى او په خصوصي توګه د هغۀ په تنقيدي شعور هم بحث اوکړو.

## ۱ صنفي تعين او فني تېکنيك

لکه څنګه چې وړاندې وئيلي شوي دي چې ``سوات نامه" د خوشحال بابا يو شاهکار اثر دے، په منظومو اصنافو کښې خو دا د مثنوي په صنف کښې شاملېږي خو لکه چې معلومه ده چې مثنوي يو داسې صنف دے چې په کښې د ځينو نورو اصنافو اظهار هم کېدلے شي، ځکه مونږ سوات نامه محض يو مثنوي نۀ ګڼو بلکې په دغه مثنوي کښې د سفرنامې او رپورتاژ کړۀ وړۀ هم وينو.

سفرنامه او رپورتاژ دواړه د شلمې پېړۍ نوي صنفونه دي چې عموماً په نثر کښې ليکل شي خو دغه دواړه اصناف د خپل ماهيئت، موضوع، واقعاتو او حالاتو په بنياد په نظم کښې هم ليکل کېدے شي او په دغه تناظر کښې که غور اوکړے شي نو نن نه درې نيم سوه کاله وړاندې د حالاتو او واقعاتو د بيان له رويه په سوات نامه د سفرنامې نه علاوه د رپورتاژ رنګ هم خور دے. د سوات نامې د بيان او د واقعاتو ترجمانۍ ته چې ګورو نو په اسانه مونږ د دې ليك د صنفي تعين په حقله وئيلے شو چې دا ليك يوه منظومه سفرنامه ده چې د جديد دور د سفرنامه نګارۍ خصوصيات په کښې ليدے شي.

تر څو چې د خوشحال بابا د دې سفرنامې د فني تېکنيك خبره ده نو د دې سفرنامې د مطالعې نه پس څرګندېږي چې خوشحال بابا د يو ديده ور مشاهده کوؤنکي او د ژورې مشاهدې څښتن يو ځيرك ليکونکي په حېث د واقعاتو ترجماني کړې ده، او ځاے په ځاے ئې د خپل علم او معلوماتو څرګندونه هم کړې ده او د دغه سيمې په جغرافيائي اهميت ئې هم خبره کړې ده، د هغۀ انداز سليس، اسان او ساده دے او ژبه ئې روانه او برجسته ده. په دې توګه هغۀ د سوات د سيمې د هغه دور يو تصوير زمونږ مخې ته د لفظونو په ذريعه ايښے دے چې په کښې د خپل دور د سياسي او سماجي حالاتو کړۀ وړۀ هم ليدے شي او د سوات د سيمې اولسي او سماجي رنګ هم. د خوشحال بابا د مشاهدې اندازه ترې هم

کېږي او د هغهٔ د علم او مطالعې هم. په دې توګه سوات نامه د يو داسې شاهکار تصنيف په شکل موښږ ته را مخې ته کېږي چې هم ئې صنفي اهميت په خپل ځائے او هم ئې سياسي، سماجي، ديني، ادبي او تاريخي مقام خپل ځان څرګندوي. د هم دغه اهميت او مقام په وجه سوات نامه د يو شاهکار تصنيف درجه ترلاسه کوي او موښږ ئې د هم دغه حېثيت نه د موضوعاتو جاج اخلو.

## ۲ علمي او ادبي حېثيت

د خوشحال بابا د سوات نامې د علمي او ادبي مقام احاطه خو په دې مختصره مقاله کښې نهٔ شي کېدے او که موښږ د دې کتاب د ټولو اهمو اړخونو سرسري جائزه هم اخلو نو بيا هم دا بحث ډېر اوږدېږي خو بيا هم موښږ هڅه کوؤ چې د سوات نامې د ځينو اړخونو وضاحت سره د ځينو نمونو او مثالونو اوکړو چې د دې کتاب د اهميت او ورسره د خوشحال بابا د علم و فضل او په ادب او نورو علومو او فنونو د هغهٔ د ګرفت اندازه ترې اوشي.

لکه چې وړاندې ورته اشاره شوې ده چې سوات نامه په يو وخت د تاريخ، جغرافيې، سياسياتو، سماجياتو، مذهب او عقائدو او نورو علومو ترجماني کوي، نو موښږ دلته هڅه کوؤ چې د دغو اړخونو وضاحت د سوات نامې د ځينو نمونو په ذريعه اوکړو، د سوات نامې ابتدا د تاريخي اهميت نه کېږي چې په کښې خوشحال بابا د شاه جهان بادشاه دور، په هغه دور کښې خپل حالتِ زار، د يوسفزيو بيان او د هغهٔ دور ځينو تاريخي شخصياتو او ورسره د سوات تذکرې ته اشاره کوي، خوشحال بابا د دې کتاب (سفرنامې) ابتدا داسې کوي:

په دوران د شاه جهان بادشاه ځواني وه
مېسره د زړهٔ هره کامراني وه
سرائے له سواته فاصله لرې دېرش کروهَ
چې ورکوز شې تر دريا د سوات تر کوهَ
درې ځيزونه مې د سوات د زړهٔ په ياد وو
نور ئې هرڅهٔ په حساب و ما ته باد وو
يو خسران چې په حضور د وادهٔ کار دے
بل هوا تر نرګس زار درېم ئې ښکار دے
زهٔ نوکر وم، يوسفزيه رو ګردان وو
ځکه ورغله تر سواته زما ګران وو
ملو خان د وادهٔ چار زما په زړهٔ کړه
زهٔ په کور د صدر مور ئې را وادهٔ کړه

تماشه د نرګس زار وه، که د ښکار وه
په پیری کښې را پېرزو د کردګار وه
سوات مې واړه لك پاے کړۀ سر تر پایه
خبردار ئې شوم له هره هره ځایه[8]

دغسې د خوشحال بابا د یوسفزو او نورو پښتنو په حقله معلومات ورکوي، د شاه جهان نه پس د اورنګ زېب د دور ځینو واقعاتو ته هم اشارې کوي او د سوات د سیمې تصویر کشي هم کوي. په دغه بیان کښې خوشحال بابا د مغلو د مخالفت تذکره او د ځینو جنګي مهماتو یادونه هم کوي خو د سوات د سیمې او د سوات د اوسېدونکو حالات په خصوصیت سره بیانوي او ډېر په بې باك انداز د سوات په اولس تنقید کوي او وائي:

اوس به حال د سوات د ملك درته بیان کړم
د دې خلقو کاروبار به در عیان کړم
چې د ننګ په کار کښې شي په ما دا چارې
د ناکس او کس همواري نا همواري
پښتانۀ واړه نادان د جهل کان دي
که دې واورېد د یوسف لا په بل شان دي
ما د سوات د عالم ښه ننداره اوکړه
د هر هر فریق مې پټه، ښکاره اوکړه
خو په خولۀ کلمه لولي مسلمان دي
په وعده په عهد، قول بې ایمان دي
د لږ سود، د لږ بهبود، د لږ مقصود دي
په اندك له تا خوشنود هم ناخوشنود دي
د خپل سود دپاره ګرمه یاري کاندي
چې ئې سود نۀ وي، بې شرمه یاري کاندي
خبردار کله په شرم، په کرم دي
همګي عبد الزوجه، عبد الدرهم دي[9]

د سوات د اولس دغه غندنه او د هغوی په خویونو او عادتونو دغه تنقید ئې مخ په وړاندې ځي او چې خبره مذهب، عقیدې او خانۍ ملکۍ ته راشي نو خوشحال بابا یو یو کس په نامه یادوي او تنقید پرې کوي. هغه وړاندې لیکي:

ملکان خانان ئې کل واړه خران دي
عالمان شېخان ئې واړه جاهلان دي

چې عبدل عبدل بالۀ شي په کښې کټ دے
اوس بساند کوټه د کلي کټوی څټ دے
د جهان عیبونه واړه سره ټول کړه
هغه واړه د همزه د غاړې پسول کړه
د طالي که درته وایم یو کالے دے
ډك ښانك دے د وګرې که یا تالے دے
د کاچو نمسے نۀ خان دے نۀ ملك دے
کالوجن، دروغژن غشے د هلك دے
ملکي ئې په کرم ده، نۀ په توره
په دا دواړه توکه مور ده باندې بوره[10]

خوشحال بابا د سوات په دغه سفر کښې ځینې علمي او مذهبي او دیني مناظرې هم کړې دي چې په خصوصي توګه په کښې د شېخ میاں نور سره مذهبي او دیني مباحثې شاملې دي. خوشحال بابا په دغو مباحثو کښې د پیر روښان دیني او تصوفي کتاب خېر البیان او د اخون درویزه مسلك، پوهه، عقیده او کتاب مخزن الاسلام هم د خپل تنقید نخښنه جوړ کړي دي. او دغسې په علمي مباحثو کښې هم د یو معتبر نقاد په حېث مخې ته راغلے دے، دغه شان خوشحال بابا په ادبي حېثیت او فني خامیو د تنقید په وخت د یو ادبي نقاد په حېث هم خپل ځان ځرګند کړے دے، د شېخ میاں نور او د هغۀ د دوی نورو دیني عالمانو باندې طنز او تنقید کوي او وائي:

چې نېکان، پاکان ئې دا دي حال ئې دا دے
شېخ میاں نور په کښې د واړو نه والا دے
اول حال د عالمانو درته وائم
بیا له پسه به میاں نور درته اوستایم
عالمان ئې همګي واړه سفیهه دي
نۀ عالم او نۀ فاضل دي، نۀ فقیهه دي
چې د کنز، د قدوري، شي ځان ملا کا
هر حرام به په خپل ځان باندې روا کا
دا چې کنز قدوري اولولي اعلیٰ دي
زیاتے شندے خو هغه کا چې ادنیٰ دي
نۀ د کنز په دقیقو څۀ خبر شوي
نۀ په مخ د قدوري شونډې بر شوي
کتابونه په سر کېږدي ځان ملا کا

په هر کلي، محلت ګرځي تګي غلا کا
کښېني شرع به کوي په رشوتونو
ځان قاضي کا، په غلط روايتونو
و هر چا ته مسئلې د سخاوت کا
خپله خونه ډکوي د بل غارت کا
په مسجد راځي پنځهٔ وخته اذان کا
چې زکوٰة سرسايه نهٔ وي مسجد وران کا
د ميراث مالونه خوري له ظالمانو
نوم په ځان باندې کښېږدي د عالمانو
په دا هسې علم برند کښېني ملا شي
و عالم ته ميراث خور د انبياء شي[11]

په دې موقع خوشحال بابا د ځينو فرسوده رسمونو، توهماتو او غلطو عقيدو غندنه هم کړې ده او د دغو رسمونو او عقيدو په منونکيو او خورونکيو ئې هم سخت تنقيد کړے دے. خو دغه ټول بحث دلته احاطه کول ګران دي، البته د اخون درويزه او د هغهٔ د کتاب په علمي او ادبي حېثيت چې خوشحال بابا کوم تنقيدونه کړي دي د هغې لړ وضاحت دلته ضروري دے. خوشحال بابا وائي:

"يو کتاب دے درويزه سره جوړ کړے
چې د سوات خلق ئې له علمه دے موړ کړے
نامعقول، مجهول بيان په کښې بې ځايه
په کښې بد د سيد وايه، يزيد ستايه
دا احوال به په بل فصل کښې ښکاره شي
په مطلب نظر لرم چې در ښکاره شي
ناګهانه چې زما په نظر کښېووت
په دا حرف په دا وئيل مې نظر پرېووت
چې لعنت به په يزيد هغه واينه
چې په رفض کښې غره بې حده وينه
د حسېن په مرګ يزيد کله راضي وۀ
بلکې دے د دۀ د خون متقاضي وۀ
امراګان ئې د حسېن په مرګ قصاص کړۀ
زۀ حيران شوم د يزيد په هسې خاص کړۀ
بيا ئې دا وو په کښې کښلي دۀ له دينه

چې په آل به رافضي درود وائينه
غهٔ جاهل ملا چې دا کتاب وهٔ کښلے
ما په دا خبرو دے وهٔ ډېر ښکنځلے
مخامخ ئې دا خبرې کړې نمائې
چې تهٔ هم سکه رافضي ئې چې دا وائې
رد بدل د دې خبرې ډېر مذکور شهٔ
دا مذکور په ټول سوات کښې مشهور شهٔ[12]

خوشحال بابا چې په مخزن کوم ادبي اعتراضونه کړي دي هغې سره د خوشحال بابا د ادبي تنقيد غوره نمونې زمونږ مخې ته راځي، هغه دې لړ کښې وائي:

درويزه چې بيان کړے خپل کتاب دے
نوم ئې مخزن الاسرار کړے جناب دے
هر بيان ئې ناموزون، مجهول، بېرنګه
خالي پاتو له دانشه، له فرهنګه
که يوه مصرعه په شل، بل په سل ده
نامربوطه، ناموزونه، په وئيل ده
قافيه ئې لام او دال سره وهلې
په رديف کښې ئې نون واو سره پېيلې
قصيده د بوصيري ترجمه کړې
عربي ئې تر پښتو مضحکه کړې
هر هر بېت د قصيدې چې دُر مرجان دے
په پښتو کښې تر اوربشو لا ارزان دے
معما د آذري ترجمه کړې
تصوف ئې و عالم و ته نومړې
ترجمه د شاه ناصر يو څو اشکاله
و عالم ته جوړه کړې له مقاله
مسئلې ئې نظم کړې په پښتو دي
درته څهٔ وائم چې څهٔ دي؟ د لوستو دي؟
په دا هسې شان کتاب ئې مباهات دے
د جامي تر هفت اورنګ ورته ناويات دے[13]

په مخزن د خوشحال بابا د دغه تنقيد نه ښکاري چې هغه مخزن د نظم کتاب ګڼي خو

هم د خوشحال بابا په حواله د دې خبرې وضاحت کیږي چې شېخ میاں نور د خوشحال بابا د ادبي تنقید په ځواب کښې وائي چې مخزن د نظم کتاب نهٔ دے، خوشحال بابا د شېخ میاں نور بیان داسې را اخلي:

بل زمونږ مخزن نهٔ شعر نهٔ بیان دے
بیان شوے نظم نهٔ دے په بل شان دے
که ئې ګورې درست په شان د صحیفو دے
چې راتلے به له اسمانه د هغوی دے
په پښتو کلام موزون دے بیان شوے
په معنٰی کښې دګر ګون دے بیان شوے[14]

دغه شان خوشحال بابا پیر روښان او د هغهٔ کتاب خېر البیان هم غندلي دي او ورسره دا خبره هم د غور وړ ده چې خوشحال بابا د پیر پرستۍ په هغه تاریك دور کښې د خپل جدید او رسا فکر ډیوه داسې بله کړې ده چې پښتانهٔ ئې په هغه دور کښې د دغه فرسوده رسمونو نه منع کول غوښتل، خوشحال بابا د پیر روښان د پیرۍ مریدۍ او د هغهٔ د مسلك د غندنې سره سره د هغه دور نورو فرسوده رسمونو او قبر پرستۍ ته هم اشاره کوي او دا هرڅهٔ د جهالت نتیجه ګڼي. خوشحال بابا داسې وائي:

هغه وخت چې پیر روښان فساد بنیاد کړ
پښتنو ورسره ټینګ کار د ارشاد کړ
پښتانهٔ په هغه دور پیر پرست وو
څوك مرید د شاه عیسٰی څوك د سرمست وو
د روښان بخره ورکزي او افریدي شول
هغه خوښ په رهزنۍ په عنیدي شول
د قاسم په بخره واړه غوریاخېل وو
ډنګر پیر وته د بنوں شیتك اېل وو
خټك واړه بوبکري، پیر منصوري وو
له بدعته له فساده په بري وو
په مذهب کښې درست خټك سُني مذهب دے
اما پیر ورته له جهله لکه رب دے
که په دا سبب کافر وي ګوندې وینه
ګنه واړه په مذهب کښې سُني دینه
یوسفزي چې همه واړه عیسائي وو
ملکانو سره ګډ په رسوائي وو

قاسمي، شاه عيسٰی ئي سره په جنګ وو
روښنائي پير منصوري سره دا رنګ وو
درويزه له يوه لوريه را پيدا شۀ
په لږ علم په دا ملك کښې لوے ملا شۀ
چې ئې حال د دې عالم مشاهده کړ
خپل کتاب ئې په کاغذ مسوده کړ
د روښان خېر البيان ئې وۀ ليدلے
د هغۀ په مضمون نۀ وۀ پوهېدلے
دۀ چې خوشے ميدان بيا موند سخن ګوئ شۀ
په وئيل کښې چې ئې زړۀ وۀ هسې توے شۀ
هغه وخت په پښتنو کښې علم نۀ وۀ
درويزه تر مجتهد لا ورته ښۀ وۀ[15]

د پيرئ مريدئ، مسلك او عقيدې، علم او جهالت دا بحث هم ډېر اوږد دے، ځکه دا تفصيل هم دلته نۀ شي بيانېدلے، البته دا خبره ترې په اسانه جوتېږي چې د دين او مذهب په حواله خوشحال بابا د خپل دور يو روشن فکره او عالم فاضل شخصيت وۀ چې هر قسم پير او ملا د هغۀ د علم په مقابله کښې او د هغۀ د منطقي دلائلو په مخکښې موقف نۀ شو ثابتولے، د خوشحال بابا دغه علمي او ادبي شخصيت مونږ ته د هغۀ د سفرنامې سوات نامې په ذريعه مخې ته راځي، د هم دغه سوات نامې په ذريعه د هغۀ جغرافيه داني هم اوګورئ چې د سوات حدود اربعه او نور تفصيلات څنګه بيانوي. هغه وائي:

ملك د سوات د ملوکانو د نشاط دے
په دوران د يوسفزيه وران رباط دے
و شمال و ته ئې غر بلورستان دے
شرق کشمير، غرب ئې کابل او بدخشان دے
هندوستان و ته تور غر لري بدغاشي
ورخاتۀ پرې د لښکرو په غوغا شي
تر کابل نه ئې هوا د اوړي ښه ده
د کابل هوا ترخه د دۀ خوږه ده
په هوا کښې د کشمير په اب و رنګ دے
حېف دا چې کشمير ارت دے، سوات تنګ دے
طولاني دره تر دېرشو کروهو ډېره
عرض ئې دوه کروه، يا يو يا تېر و بېره

له مشرقه ئې درياب درومي مغرب ته
په كج راست ئې وئيل مه كوه كاتب ته
په هر كلي په هر كور كښې ئې ولې ځي
هم ئې خوري، هم ئې هر لوري ته غلې ځي
نۀ پرې لار شته، نۀ بل كار شته نۀ بل سود دے
خو يو ګنج ګوښه له خلقو، غله بود دے[16]

دې لړ كښې د سوات سره تړلې نورې سيمې هم ښائي او وائي:

د چترال سرحد د سوات سره قريب دے
غر او سم ئې اباداں جريب جريب دے
و چترال و ته ئې لار د كوهستان ځي
تر چتراله په پينځۀ ورځې كاروان ځي
درې څلور مياشتې دا لار وي ښه روانه
ډېر افت لري له برفه له بارانه
تلۀ راتلۀ د خلائق په دا لار كم شي
مګر كار په بدرګه د ملك سم شي
يوه لار د هندوكش ده تركستان ته
بله لاره دا د چترال ده بدخشان ته
بله لار چې تر پتن ځي تر كاشغره
بله لار كه په موزنګ ځي بره بره
دا څو لارې په سرحد د هندوستان دي
نورې لارې په سرحد د خراسان دي[17]

مونږ كه د څلور سوه يو كم اتيا بېتونو د دې وړوكي كتاب په هر اړخ تفصيلي بحث كوؤ او بيا ئې د تاريخي، ديني، سياسي، ادبي، سماجي او جغرافيائي اهميت جاج اخلو نو دا بحث به راغونډول ګران شي، دا موضوع په حقيقت كښې د يوې تفصيلي څېړنې غوښتنه كوي خو مونږ په دې بحث كښې د خوشحال بابا د سوات نامې د فني او فكري اړخونو يوه خاكه پېش كړه چې په را روان وخت كښې به پرې يقيناً تفصيلي څېړنې كېږي، په دې موقع مونږ دومره قدرې وئيلے شو چې سوات نامه د پښتو په ادب كښې يوه شاهكار اضافه ده چې د خوشحال بابا غوندې نابغه قلمكار نه ئې توقع كېدے شوه.

# حوالي

[۱] خلیل، همېش، قلمي نسخه، مشموله سوات نامه (د خوشحال خان خټك)، مرکزي خوشحال ادبي جرګه اکوړه خټك، اکتوبر 986ء، ص5، 6.

[۲] Khadija, Begum Feroz ud din, Life and works of the illustrious Khushal Khan Khatak Pashto Academy University of Peshawar, 007, p350.

[۳] کامل، مومند، دوست محمد خان، خوشحال خان خټك، اداره اشاعت سرحد پشاور، 1951ء، ص226.

[٤] Shakeel Ahmad Khan, Swat Nama of Khushal Khan Khattak (Mphi Thesis) Area Study Centre, University of Peshawar, 1981, p1.

[٥] نسیم، خټک، اقبال، پروفیسر، ډاکټر، پښتون شناس، پښتو اکېډمۍ پېښور یونیورسټي، 2011ء، ص230.

[٦] خلیل، همېش، سریزه، مشموله سوات نامه، ص33، 34.

[۷] ایضاً، ص 34، 35.

[۸] خټك، خوشحال خان، سوات نامه، (محوله بالا) ص47.

[۹] ایضاً، ص5.

[۱۰] ایضاً، 67.

[۱۱] ایضاً، 68، 69.

[۱۲] ایضاً، ص 72، 73.

[۱۳] ایضاً، ص74.

[۱٤] ایضاً، ص 81، 82.

[۱۵] ایضاً، ص96، 97.

[۱٦] ایضاً، ص 49.

[۱۷] ایضاً، ص 51، 52.